ما ته ګوره چې د انسانانو خوا ته ډېر نږدې هم نه ځم. خو هغوی په داسې ناروغۍ اخته کوم چې کله کله ټول کلی ورک کوم. د کولرا نوم به دې اورېدلی وي؟"



ماشې ځواب ورکړ: "هو، هو، ښه مې اورېدلی دی."

مچ پوښتنه وکړه: "تاته معلومه ده چې کولرا څنګه خپرېږي؟"

ماشې د فکر کولو نه وروسته ځواب ورکړ: "ښایي د خوسا شیانو له خوړلو څخه."

مچ ځان نېغ نېغ کړ او بیا یې وویل: "دا ټولې ناروغۍ زما له کراماتو څخه دي.

ماشې خورې! د خوړلو شیانو ته د کولرا مېکروبونه زه رسوم. پوه شوې؟

په ظاهره ډېر ورکوټی یم، خو انسانان په داسې ناروغیو اخته کوم چې د هغوی ټول نسل کمزوری شي. لویه تبه، کولرا، پېچ، نسناستی او د خېټې ناروغۍ څوک پیدا کوي؟ دا زه یم زه."

ماشې وخندل او بیا یې وویل: "ته خو کټ مټ د بلا پلار یې، مچه وروره!"

مچ په خندا وویل: "هو داسې خو یم"

ماشې پوښتنه وکړه: "دا خو راته ووایه. ته دا دومره ناروغۍ څرنګه خپروې؟"

مچ بیا په خندا وویل: "ماشې خورې! دا یوه معجزه ده. تا ته تر اوسه دا هم نه ده معلومه؟ راځه چې مخکې یو څو ځیزونه دروښیم. دغه د چټلیو ډېران ګورې؟"

ماشې وویل: "هو. هو په ریښتیا دا زمونږ د ژوندانه ځای دی."

مچ بیا وویل: "وګوره! زما کورنۍ هم په دې ځای کې روزل شوې ده. د ټولو د مخه مونږ له دې ځایه مرداري او چټلي د خلکو کورونو ته رسوو. اوس راځه چې تا ته ځینې نور دروښیم."

مچ او ماشې دواړه څنګ په څنګ د کلي د کورونو په لور روان شول.

مچ یو کور ته ننوت. د کور په برنډه کې د نري رنځ یو ناروغ پروت و.



ټوخی یې کاوه او لاړې یې پر ځمکه غورځولې.

مچ کرشمه غونډې وکړه او ماشې ته یې وویل: "اوس به زه تا تــه وښیم چــې زه ناروغي څرنګه خپروم."

ماشې په ډېر غور سره ورته کتل. مچ ولاړ پر لاړو کښېناست او خپلې پښې یــې په لاړو ککړې کړې په څنګ کې یــې د خــوړو یــو لــوخ لــوښی پــروت و. مــچ د خولې له لاړو څخه والوت او پر خوړو کښېناست. دوه ماشــومان چــې پــه برنــډه کې ویده وو، د یوه ماشوم سترګې خوږېدې او ســترګې یــې پړسېدلې وې او پــه کونجونو کې یې چخې ټولې شوې وې. مچ والوت د ماشــوم پــر خوږمنــو سترګو کښېناست. خپلې پښې یې په زوره د سترګو پر زوو وخوزولې او د پــښې ویښتــه یې پکې ککړ شول. ماشوم ویښ شو او په ژړا یې پیل وکړ. مور یــې خپــل زوی په غېږ کې واخیست او په خپل خیرن څادر یې د زوی سترګې پاکې کــړې او د دې لپاره چې زوی یې آرام شي د لوښي څخه یې څه خواږه د ماشــوم پــه لاس کې ورکړه.

مچ اوس بیا والوت او د بل ماشوم په ســترګو چــې ویــده و کښېناســت او خپلــې پښې یې وخوزولې او د ناروغ د سترګو مېکروبونــه یــې د روغ ماشــوم سترګو تــه ورسول.

ماشې په ډېرې خوښۍ دا ننداره کوله.

مچ په خندا پوښتنه وکړه: "څه پوه شوې یې او که نه؟"

ماشې ځواب ورکړ او وویل: "ښه پوه نه شوم. لږ څه ما پوه کړه.

ته خو ځې کله پر یو ځای کښېنې او کله پر بل ځای."

مچ په خندا سر وخوزاوه او ويې ويل: "هو ماشې خورې، که لږ څه فکر وکړې،
ته به و پوهېږې. ښه ده راځه چې ښه دې و پوهوم. زما پر پښو دا ويښته ګورې؟



د چټلۍ او ناروغۍ مېکروبونه په دې ويښتو پورې نښلي. زه هر چېرې د چټلۍ پسې
هڅه کوم او پر هغې کښېنم. د ناروغۍ مېکروبونه زما د پښو په ويښتو پورې نښلي،
بيا زه د انسانانو د خوړلو، څښلو په شيانو کښېنم او دا ټول مېکروبونه هلته پرېږدم."
ماشې په حيرانتيا سر وخوزاوه ويې ويل: "ته خو ريښتيا ډېر خطرناک يې."
مچ چې خپل صفت واورېد ډېر خوشحاله شو او بيا بيا به پر چټلۍ کښېناست او
ماشې ته به يې خپلې ککړې پښې وښودلې.
څه شېبه وروسته يې وويل: "راځه چې يو بل کور درته وښيم."
دوی والوتل او بل کور ته ورسېدل. دغه ډېر چټل کور و. د خوړلو شيان هر
چېرې په سر لوڅو لوښو کې پراته وو. خلک چېرته به يې چې زړه غوښتل هلته
يې توکول. يو هلک په لښتي کې په ډکو متيازو ناست و.

هرې خوا ته بې شمېره مچان الوتل. مچ والوت او په ډکو متيازو کښيناست، بيـا را والوت او د خوړلو [redacted] بربنډ شيان يې و څټل او د ماشـې خـوا تـه راغـی ويـې ويـل:
"ودې ليدل؟ د خيټې ناروغی داسې خپرېږي.
داسې يو دوه کوره که نور پيدا شي زما نسل به په څو شپو او ورځو کې ډېر زيات شي."
ماشې وويل: "هو ستا خبره سمه ده، دا ځای خو زما د قبيلې لپاره هم ډېر ښه ځای دی. په دې بربنډه وياله کې زه او زما نور ملګري پـه مليونونـو هـګۍ اچـولای شـو. آه...... ولې ټول کورونه په همداسې چټلو ځايونو کې نه دي؟"
مچ وويل: "غم خو دا دی چې اوس دا خلک ليک او لوسـت زده کـوي او ډېر هوښيـار شوي دي. د دوی کورونو ته چې ننوزم وېرېږم، ځکـه چې کـه مـا ووينـي را پسـې منډې وهي او ما وژني.



خو شکر دی چې په کلي کې تر اوسه پورې هم د ناپوهو او بې پروا خلکو کمښت نشته نو همدا وجه ده چې زه وايم مخکې تر دې چې دا خلک د کتابونو په لوستلو د پاکو اوسېدلو طريقه زده کړي، مونږ بايد پر دوی يو زورور بريد وکړو."

مچ، ماشې له ځان سره بوتله او سړک ته ورسېدل. يو کراچۍ والا په سړک را روان و او نارې يې وهلې، سره هندوانه او خواږه ختکي واخلئ."

په کراچۍ باندې مات شوي ختکي، هندوانې او بادرنګ پراته وو. پر هغو باندې ډېر مچان ناست وو او الوتل را الوتل.



کراچۍ والا په يو خيرن ډبګ کې لاس ننه ايست او لږ څه اوبه يې را واخيستلې او پر ميوو باندې يې وپاشلې. د کراچۍ والا د غږ په اورېدو د شاوخوا کوچنيان

راغونډ شول دوی مېوې رانیولې او بې له دې چې ويې مينځي په خوړلو يې لګيا شول.

مچ، ماشې ته وویل: "ودې لیدل؟ دغه مېوې چې د مېکروبونو څخه ډکې دي خېټې ته ځي او پوهېږې چې بيا څه پېښېږي؟"

ماشې ځواب ورکړ: "کولرا، پېچ، نسناستی او د خېټې نورې ناروغۍ، ځواب مې درست دی که نه؟"

مچ وویل: "درست. په دغو بربنډو مېوو باندې زه د زړه له اخلاصه مېکروبونه پرېږدم، خلک چې دا مېوې و نه مينځي او ويې خوري زه به نو ډېر خوشحاله شم."

ماشې، مچ له ځان سره واخيست د اوبو يو غټ ډنډ ته ورسېدل.



د ډنډ پر شاوخوا ډېر ناپاکي وه او په اوبو باندې شنه چټل شيان ولاړ وو، يوې خوا ته د چټليو غټ ډېران پروت و. په دې خوسا او ګنده مېوو او د سبو پر پوستکو مچان ډلې ډلې شاوخوا ته بنګېدل.

په دې چټلو اوبو باندې ماشي ناست وو او د هغوی سندرې اورېدل کېدې. د ډنډ په مردارو اوبو کې ځو ښځې د کاليو او د خوراک، ځښاک د لوښو په مينځلو لګيا وې. ځو ماشومانو هم په هغو اوبو کې لمبل.

ماشې موسکۍ شوه، مچ ته يې مخ واړاوه او ويې ويل: "ګوره مچه وروره! دا زما کور دی دا ځای دی خوښېږي؟"

مچ شاوخوا ته وکتل او ويې ويل: "ماشي خورې، دا خو ډېر ښه ځای دی، ما ته معلومه نه وه چې ته دلته اوسېږې."

مچ او ماشې ډېر په غصه وو، ځکه چې انسانان غوښتل هغوی ووژني، نو دوی پرېکړه وکړه چې ټول سره يو ځای شي او د انسانانو پر ضد بريد پيل کړي.

دوی ډېر خپه وو ځکه چې هغه ټولې چټلې او ولاړې اوبه او ګنده خندقونه چې له شنو شيانو نه ډک وو او د دوی د اوسېدو لپاره ډېر ښه او مناسب ځای وو، ډېر ژر له مينځه تلونکي وو. همدا راز دوی خپه وو چې له دې نه پس ورته د مېوې پوستکي، چټل لښتي او نور خوسا شيان نه پيدا کېږي چې پرې کښېني.

ماشې، مچ ته وويل: "راځه چې لاس سره يو کړو او پر انسانانو تبه او نسناستی راولو."




# مچ او ماشی




## زموږ دښمن

دا د یوه مچ او یوې ماشې کیسه ده.

د دوی له یو بل سره لیدنه وشوه،

په خپلو کې یې وویل چې انسانانو له دوی سره دښمني پیل کړې ده او غواړي

چې دوی ووژني.

په دې خبره ټولو مچانو او ماشو وزرې وخوزولې او له ډېرې غصې نه ټولو بنګهاری پیل کړ او ټولو په یو غږ ویل: "مونږ اوس د انسانانو پر ضد حمله پیل کوو."

مچ لاس اوچت کړ او ویې ویل: "لږ له صبر څخه کار واخلئ حمله به له ډېر سوچ او فکر څخه وروسته کېږي، لومړی بنایي هر څوک خپله وظیفه وپېژني.

زمونږ تر ټولو لوی دښمن د دې کلي ملک دی، ځکه چې هغه خلک را بللي او یوه غونډه یې جوړه کړې ده، چې خلکو ته ووایي چې مونږ د دوی دښمنان یو.

زه به له ماشي خور سره د ده کور ته ولاړ شم او جاسوسي به وکړم.

نن ده پخپل کور کې د کلي هوښیاران را ټول کړي دي. له ښاره زمونږ یو دښمن ډاکټر راغلی دی.



دغه ډاکتر به ټولو خلکو ته زموږ په هکله ډېرې بدې خبرې وکړي."
مچ او ماشي له هغه ځایه را والوتل او د ملک کور ته راغلل. د کلي ټول هوښیاران هلته را غونډ شوي وو.
ماشي کرار له مچ څخه پوښتنه وکړه: "موږ چېرې کښېنو چې د دوی خبرې واورو؟"
مچ په کراره ووېل: "بس موږ به چپ چپ یو چېرې کښېنو، چې دوی موږ ونشي لیدلای."
دواړو اخوا دېخوا وکتل. هلته نږدې د کلونو یوه کلدانی پرته وه. مچ او ماشي دواړه غلي په هغې کې کښېناستل.
په دغه شېبه کې ډاکتر هم راورسېد. د کلي مشرانو هغه ته ښه راغلاست ووایه او په یو ښه ځای کې یې کښېناوه.
کله چې ډاکتر کښېناست. یو سړي چې نوم یې رمضان و پوښتنه وکړه:
"ډاکتر صاحب! ما اورېدلي تاسو تللي وئ چې د بي بي ګل تـرور ژامـن ووینـئ. هغوی څنګه وو؟"

ډاکټر ځواب ورکړ: "سترګې يې سرې او پړسېدلې وې.



زه چې ګورم د کلي د زياتو ماشومانو سترګې خوږمنې دي."

بيا رمضان پوښتنه وکړه: "ډاکټر صاحب! دغه ټولې ناروغۍ څنګه لـه يـوه سـړي څخه بل سړي ته خپرېږي؟ پرون زما د مېرمنې سترګې خوږېدلـې او نـن د وړو ماشومانو سترګې سرې شوې دي او اوبه ترې بهېږي، د دې علت څه دی؟"

ډاکټر وويل: "ناروغي د مېکروبونو له کبله مينځ ته راځي. چې د ناروغ سړي نه روغ سړي ته لېږدول کېږي."

رمضان غوښتل چې ځان پوه کړي، هغه بيا پوښتنه وکړه: "څنګه"

ډاکټر ورته داسې وويـل: "د ټوخـې لـه لارې. د توکـانو(لاړو) لـه لارې. د ډکـو متيازو او يا د يو زخم له لارې. د بي‌بي ګل سترګې دردمنې وې. هغې چې پـه کوم لاس يا څادر خپلې سترګې مښلې وې پر هماغه لاس يا څادر به يې

د ماشومانو سترګې هم پاکې کړې وې. په دې ترتیب سره د ناروغ د سترګو مېکروبونه د روغو بچیانو سترګو ته ورسېدل."

ډاکټر پوښتنه وکړه: "خو آیا تاسو ته معلومه ده چې موږ ته تر ټولو زیات ضرر او د دې ناروغیو مېکروبونه څوک رارسوي؟"

محمد خان پوښتنه وکړه: "صاحبه څوک یې رارسوي؟"

ډاکټر وویل: "دغه کوچنۍ غوندې حشره چې موږ او تاسو ورته مچ وایو.






تاسو ته نه ده معلومه چې دا څومره خطرناک شی دی. دا په خمکه باندې په وینو، لاړو، زوو او ډکو متیازو چې ښکاره پراته وي کښېني او هغوی د خپلو

خولو او پښو په واسطه په لکونو مېکروبونه له ځان سره وړي زمونږ د خوړلو او څښلو په شيانو يې پرېږدي. د سترګو ناروغی هم له يوه ماشوم څخه بل ماشوم ته رسوي. داسې چې که د يو ماشوم سترګې خوږمنې وي کله چې ويده کېږي مچ د هغه په سترګه باندې کښېني او بيا ځي د يو روغ ماشوم پر سترګو کښېني په دې ترتيب مېکروبونه روغې سترګې ته رسېږي او دا هم په هماغه ناروغی اخته کېږي. که غواړئ چې روغ او رمټ اوسئ د خپل خوراک او څښاک شيان له مچانو څخه خوندي وساتئ."



رمضان پوښتنه وکړه: "ډاکټر صاحب! دغه د خوړو شیان چې مېکروبونه پکې ګډ شوي وي هر څوک يې چې وخوري ناروغېږي؟"

ډاکټر ځواب ورکړ: "په ماشومانو او کمزورو خلکو ناروغي ډېر ژر اغېزه کوي، خو یو قوي سړی کولای شي چې تر یو حده پورې مقاومت وکړي."

محمد خان په خبرو لګیا شو: "په دې کلي کې خو مچان زښته زیات دي، له دې څخه مونږ څنګه خلاص کېدلای شو؟"

ډاکټر وویل: "زه پوهېږم چې د هغوی بشپړ ختمول زمونږ لپاره ناشوني دي خو مونږ کولای شو چې یو څه يې له منځه یوسو. مچان او ماشي په چټلیو، ډېرانو، ولاړو اوبو او د خوسا ویالو په موجودیت کې زیاتېږي. دا د چټلیو ټول ډېرانونه په یوه ځای کې غونډ کړئ او ویې سوزوئ.



د خوراک څښاک شیان پټ وساتئ، چې مچان و نه کړای شي پر هغو کښېني.
په هر ځای کې د لاړو توکول او په ویالو کې تشې او ډکې متیازې کول مچانو ته دا امکان برابروي چې خطرناک مېکروبونه له یوه ځایه بل ځای ته خپاره کړي. که چېرې یو ماشوم په ډاګه باندې ډکې متیازې وکړي نو هغه تر خاورو لاندې پټې کړئ. د متیازو لپاره کناراب استعمال کړئ، او تر استعمال وروسته یې سر پټ وساتئ، چې مچان ور نشي.



که چېرې په کړکیو او دروازو باندې جالــی ولـګوئ دا بـه ډېره ښه وي. چــې د جالیو په سبب مچان و نه کړای شي په آسانی کوروتو او پخلنځیو ته ننوزي."

یو سړي پوښتنه وکړه: "ډاکټر صاحب په کلي کې ماشـي هـم ډېر دي. لـه دوی څخه څنګه خانونه وساتو؟"

ډاکټر وویل: "ما مخکې تاسو ته وویل چې ماشي هم د مچانو په څېر د چټلیو په ډېرانونو، خوسا ویالو او کوهیانو کــې وده کـوي، د دوی هـګۍ او بچــي د ولاړو اوبو په مخ باندې او په چټلو ویالو کې ژوند کوي. کـه د شـپې لـه خـوا د ویـده کېدو په وخت کې په کټ باندې پشه خانه ولګوئ ډېر به ښه وي."

ډاکټر چې چپ شو، ملک وویل: "ورونو! نن ما تاسـو د دې لپـاره رابللـي یاسـت چې تاسې د ډاکټر صاحب خبرې د زړه په غوږونو واورئ نه دا چې په یوه غوږ مو در ننوزي او په بل بهرته ووزي، مونږ ټول باید په دې خبرو عمل وکړو. کـه مونږ ټول همت وکړو نو خپل کلي به د ماشو او مچانو له شره وژغورو."

مچ او ماشې دواړه ناست وو، دا خبرې یې ټولې واورېدلې.

ماشې، مچ ته مخ واړاوه او ویې ویـل: "تـا واورېدلـې؟ زمونـږ د ختمولـو لپـاره دا خلک څه، څه لارې نه لټوي؟"

مچ په ډېر غصه په بنګهاري وویل: "نور لـه دې خایـه وځو، مـا تـه ډېره غصـه راځي زه نور نه غواړم چې د دوی خبرې واورم. راځه چې خپلـو لښکـرو تـه د تیاری حکم ورکړو او سبا ته پر دوی زورور برید وکړو."

دوی دواړه والوتل د اوبو ډنډ ته راورسېدل. هلته ټول مچان او ماشي دوی ته په انتظار ناست وو. مچ په یوه لویه تیږه ودرېد. لاسونه یې وښېل او ویې ویل: "ورونو او خویندو! د برید کولو لپاره تیار اوسئ ډېر ناکاره وخت پر مونږ راتلونکی دی. انسانان زمونږ د ختمولو لپاره غټ غټ دامونه جوړ کړي دي. اوس نو مونږ ته هم په کار نه دي چې په آرام کښېنو. مونږ ټول به یو موټی سبا په سخت او زوروور برید پیل کوو."

ماشي خپل لښکر یوې خوا ته غونډ کړ.

مچ خپلو ملګرو ته وکتل او ویې ویل: "سبا ته تاسې ټول تیار اوسئ او د باندې راووزئ او هرچېرې چې چټلي، د خولې لاړې، وینه، یا ډکې متیازې وینئ په هغو به کښېنئ خپلې پښې او خوله پکې ښه ککړه کړئ، چې زیاته چټلي پرې ونښلي، د مېکروبونو په دغو ککړو پښو سره به تاسې د انسانانو د خوراک او څښاک په شیانو کښېنئ. که د کوم ماشوم په بدن دانې ختلې وي، پوزه یې بهېده یا د سترګو څخه یې اوښکې بهېدې نو تاسې په چټکئ سره ځان ورته ورسوئ او دا خوسا مېکروبونه هلته پرېږدئ او بیا د خپلو پښو د ویښتانو په ذریعه وینه، زوه او اوبه راغونډې کړئ. په دې ډول تاسې چې د روغ ماشوم په سترګو کښېنئ نو د هغه سترګې به هم خوږمنې شي او درد به وکړي. په بربنډو زخمونو کښېنئ او پر هغوی باندې خپل زهرجن مېکروبونه خوشې کړئ ترڅو چې له بده لا بد تر شي. ووایاست په خبرو پوه شوئ؟"

مچانو په بنګهاري کې وویل: "هو صاحبه پوه شوو."

سبا ته سهار وختي د مچانو او ماشو لښکرې تيارې او د حملې لپاره ووتلې. خو په همدغه وخت کې د ملک په مشرئ د کلي ډېر ولس چې اوږدې جاروګانې، بېلچې. لاس ګاډي او د چونې ډکې بورۍ ګانې او حشره وژونکو دارو د پاشلو بمبې ورسره وې. د دوی مخې ته را روان وو.

خلکو د جاروګانو او بېلچو په ذريعه ټول کثافات او چټلۍ سره يو ځای کولې په لاس ګاډي کې يې اچولې او د سوځولو لپاره يې ډېرى کولې. د چټليو له پاکولو نه پس يې پر هغوی باندې چونه اچوله چې مچان ور نشي.



مچ وویل: "مونږ یو څو ګاوندیان سره یو ځای شوي وو او چېرې د خوړو پر

لوښو لوښو ناست او په خوړلو بوخت وو،



په دغه وخت د یوه سړي په لاس کې د توپک په شان یو شی و. مونږ ته یې

راواړاوه هېڅ یوه نه شو چې له توپک نه څه شی راووت.



مچانو او ماشو په خلکو باندې ډېرې زورورې حملې وکړې. خو د حشره وژونکو دارو د بمبو په زور ډېر مړه شول جنګ تر ډېره وخته دوام وکړ، خو د انسان د عقل او قهر په مخکې ټینګ نه شول، ډېر مچان ژوندي وتښتېدل. دوی له قهره کورونو ته ننوتل چې د خوراک او څښاک په شیانو کښېني او له مېکروبونو یې ډک کړي، خو د کلي خلک لا مخکې ښه پوه شوي وو. د خوراک او څښاک ټول شیان د جالیو یا دستمالونو په ذریعه پټ کړل شوي وو.

مچان ښهیلي د خولې د لاړو او یا د ډکو متیازو د پیدا کولو لپاره شاوخوا وګرځېدل، خو دا شیان هم په ډاک کې ورته پراته نه وو او د خاورو په ذریعه پټ کړای شوي وو. خلکو په کړکیو او دروازو باندې جالۍ لګولې وې. توله ورځ مچانو له قهر نه بنګهاري کاوه، چې کورونو ته به ننوتل او هڅه به یې کوله چې د خوراک او څښاک پر شیانو کښېني، خو داسې معلومېده چې کلیوال د مچانو سره د مقابلې لپاره پوره تیار شوي وو.

مچانو ته هېڅ په لاس ورنه غلل او وچه خوله پاتې شول.

ماښام تر ماتې وروسته ستړي او ستومانه د یوې ونې لاندې را غونډ شول، هلته ښینې نور ماشي هم د خپل ژوند د ساتلو لپاره راغلي وو. دوی هم ډېره هڅه کړې وه، خو په دې نه وو توانیدلي چې انسان ته تاوان ورسوي.

د حشره وژونکو درملو له وېرې انسانانو ته نږدې نشول ورتلای چې د هغوی وینه وڅښي.

د لورړې له لاسه د دوی حال ډېر بد وو.



دوی تر ډېره پورې کښېناستل او د انسان د وینې ښښلو لپاره یې منګولې مښلې او ژړلې. په پای کې مچ له خولې یو سوړ اسویلی وایست او ویې ویـل: "راځئ ورونو، اوس به مونږ کوم بل ځای ته ځو، اوس دا کلی زمونـږ د اوسېدو وړ نـه دی، دا ولس ډېر هوښیار شوي دي."

څه فکر کوې چې کوم یو زمونږ لوی دښمن دی،

# مچ او که ماشی؟



# وقایه له معالجې څخه بهتره ده

# د مچ او ماشي د لوبې طريقه

د ضرورت وړ مواد:

دانې (وړوکې تيږې يا د جامو تڼۍ او يا څه نور وړوکي شيان هم پکې استعمالولای شئ)

شپږ دانې واړه کارتونه چې د يو نه تر شپږو پورې نمبر پرې وهلی شوی وي، داسې اېښودل کېږي چې مخ يې پټ وي او يا يې په يوه کڅوړه کې کېږدئ.

## د لوبې طريقه

د مچ او ماشي لوبه په يوه مخصوصه تخته باندې اجرا کېږي چې په هغه کې دوه ډلې يا د څلورو نه تر پنځو کسانو پورې برخه اخيستلای شي.

هره يوه ډله يا کس يوه دانه د لوبې د پيل په لومړی خانه کې ږدي او نوبت اخلي چې ځانته نمبرې جوړې کړي. کله چې په نمبر باندې تصميم ونيول شو نو نوموړې ډله يا کس خپله دانه هماغه نمبر کې ږدي او د همهغې خانې د هدايت له مخې عمل کوي.

د مچ تصوير دا ښايي چې لوبغاړې بايد د سوالونو هغه يو کارت اوچت کړي او ځواب يې ووايي کوم چې د مچانو په باره کې وي او د ماشي تصوير دا ښايي چې بايد د ماشي په هکله سوال اوچت کړي او ځواب ووايي.

د صابون علامه څرګندوي چې لوبه کوونکی بايد يو عمومي سوال چې په هغه کې د روغتيا په هکله او يا نور عمومي سوالونه چې د کيسې په باره کې وي اوچت کړي.

که چېرې دوی صحيح ځواب ورکړ، هم هلته پاتې کېږي، او که ځواب يې غلط وي بايد چې خپله دانه اوچته کړي او بېرته يې په خپل پخواني ځای کې کېږدي. کومې ډلې يا کس چې له ټولو مخکې آخري خانې ته ځان ورسوي لوبه ګټي. که چېرې وخت وي نو لوبه دې له سره پيل کړي.

## د لوبې بله طريقه

بله طريقه يې داده چې، د نمبرو د استعمال نه پرته لوبه ترسره کېږي داسې چې لوبه کوونکی هر ځل يوه خانه مخکې ځي او سوال ته ځواب وايې که چېرې غلط ځواب ووايې نو بېرته خپل پخواني ځای ته ځي. دغه طريقه وخت ډېر نيسي خو ذهني فعاليت پکې ډېر او چانس پکې کم دی.

مچ د خپلو ګاونډیانو
(ملګرو) سره چېرې
ناست و؟

مچ له انسان څخه ولې
خوا بدې و؟



مچ د انسانانو پر
ضد د څه شي
پریکړه وکړه؟

مچان چېرته اوسېږي؟

مچان ناروغي څنګه
خپروي؟

مچان، انسانان په
کومو ناروغیو باندې
اخته کوي؟

د مچانو هګۍ او بچي
په کومو ځایونو کې
وده کوي؟

مچان له کومو ځایونو
څخه مرداري او
چټلي د خلکو کورونو
ته رسوي؟

مچان څنګه له مینځه
وړلای شو؟

د مچانو او انسانانو
په جنګ کې بری د
چا په نصیب شو؟

ماشي د څه شی څخه
خپلې خيتې مړوي؟

ماشي په کومو ځايونو
کې ژوند کوي؟

ماشي کومې ناروغۍ
خپروي؟

ماشي چيرته هګۍ
اچوي؟

د ماشو څخه څنګه
ځان وژغورو؟

ماشي ولې خپه وو؟

ماشي د څه شي په
واسطه له مينځه
وړلای شو؟

ماشي ولې په غصه وو؟

د ماشو او انسانانو په
جنګ کې بری د چا
په نصيب شو؟

د ماشو د چيچلو
څخه وروسته انسان
ته څه پيښېږي؟


شروع
ختم
صابون
وقايه له معالجې څخه بهتره ده
صابون
د مچ او ماشی لوبه

د چټلیو سوځول څه
ګټه لري؟

ولې خپل کور پاک
وساتو؟




ولې د کناراب سر او
دروازه بنده وساتو؟

په کړکیو او دروازو
باندې د جالیو لګول
څه ګټه لري؟

ولې د ویالو او ډنډونو
په اوبو، کالي، د
خوراک او ښباک
لوښي و نه مینځو؟

ولې نا مینځل شوي
شیان و نه خورو؟

ولې د خپلو کورونو
شاوخوا پاک وساتو؟

په ویالو او حویلیو کې
تشې او ډکې متیازې
کول څه تاوان لري؟

د خوړلو او ښښلو شیان
څنګه د چټلیو نه
خوندي ساتلای شو؟

ولې په ناولي څادر
سترګې پاکی نه کړو؟

وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



وقایه له معالجې څخه بهتره ده



# Fly and Mosquito
# Our Enemies

Published by: SERVE, Public Health
Edited by: Abdul Wasai Rahimi
Illustration: G. N. Haidary
2nd edition: October, 1999

SERVE
Public Health
Publication Department
P.O. Box 477
Peshawar, Pakistan

زما څومره ګاونډيان چې وو مره شول يوازې زه ورنه خلاص شوم."

ماشې وداره شوه ويې ويل: "ولې وروره! توپک خو ډېر ظالم شی دی په دې کې دننه يوه ډېره خطرناکه دوايي شته چې زمونږ او ستاسو ټول نسل بيخي له منځه وړي. له دې څخه به ځان ساتو."

مچ سر وخوځاوه او په قهر يې وويل: "صحيح ده، اوس ما پرېکړه کړې ده چې پر انسانانو باندې تبه راولم. په ظاهره زه وړوکی ښکارم، دا څه خبره ده؟ زما سره دومره غټ پوځ دی چې هر وخت وغواړم حمله وکړم د ټولو انسانانو نسل رنځور او کمزوری کولای شم.



...ve
...c Health

# سرف

د روغتیایي زده کړو پروژه

- ✓ د ناروغتیا او معذورتیا نه د مخنیوي په خاطر خپل ماشومان واکسین کړئ
- ✓ د ملاریا د مخنیوی په خاطر دننه په کور کې او د کور په شاوخوا کې د اوبو ډنډوکی مه پریږدئ او د اوبو لښتي همیشه پاک کړئ.
- ✓ د خارښت او د پوستکي د نورو ناروغیو د مخنیوی په خاطر خپل ځان او جامې پاکې وساتئ
- ✓ د سترګو د خوږیدو نه د مخنیوی په خاطر هره ورځ خپل مخ په اوبو او صابون پریمنځئ
- ✓ د روغ او ښه ژوند کولو له پاره، ځان له میکروبونو څخه، چې په سترګو نه لیدل کیږي، وساتئ

## وقایه له معالجې څخه بهتره ده

اوس راته ووایه چې د انسانانو په ضد دغه جګړه کې له ما سره ملګرې کېږې که نه؟"

ماشې خواب ورکړ او ويې ويل : "هو، وروره! انسانان زما زاړه دښمنان دي. له ما سره هم يو ډېر غټ پوځ دی. دغه پوځ هم ستا سره دی. سر له ننه به دواړه سره يو ځای د انسانانو پر ضد په جنګ لاس پورې کوو."

مچ خوشحاله شو او ويې ويل: "ډېر ښه". له خپل ځايه والوته. ماشې هم د هغه شا ته په الوتو شوه مچ د چتليو يو لوی ډېران ته راورسېد.

مچ ووېل: "کوره ماشې خورې، دا دی زما کور ته راورسېدو."



ماشې د ډېران شاوخوا ته وکتل او ويې ويل: "واه، واه تـا خـو پـه ډېر ښه ځای کې کوډ جوړ کړی دی."

مچ خوشحاله شو او ويې ويل: "هو خورې، واړه واړه ډېرانونه خو دلته ډېر دي.



خـو دا ډېرانـ تـر ټولـو غـټ دی، دلتـه مونـږ ټول پـه ډېره آرامـۍ سره پـه ګډه اوسېدلای شو."

ماشې وويل: "هو ورورره! زما کورنۍ هم په يوه ښه غټ ځای کې اوسېږي.

راځه چې زمونږ کور ته لاړ شو. هلته به زما د کورنۍ له غړو سره آشنا شې."

مچ وویل: "خامخا، زه ډېره هیله لرم چې له هغوی سره ووینم."

ماشې وویل: "هو مچه وروره! زما د ترور کورنۍ خو بالکل ستاسې په څنګ کې اوسېږي. دغه مخامخ ناولی لښتی چې ګورې هلته زما د ترور کور دی.



د انسانانو کورونه هم هلته د هغه ترڅنګ شته.

مونږ تول د انسانانو د وينې څښلو څخه خپله خېټه مړوو.



خو اوس دا انسانان تر پخوا ډېر هوښيار شوي دي او د دوی له چالاکۍ څخه مونږ ته هغه پخوانی آرامي پاتې نه ده." مچ پوښتنه وکړه: "ولې اوس څه شوي دي؟" ماشې خواب ورکړ: "ای وروره! اوس ډېر خلک هماغه خطرناک توپک لري، چې له هغه څخه زمونږ او ستاسو د وژلو لپاره خوسا دوايې راوزي.



يو خو هر وخت د هغه وېره را سره وي بله دا چې ډېرو خلکو ته زه د شــپې ور رسېدلی نه شم ځکه چې هغوی پر خپلو کټونو بــاندې پشــه خــانې لـګوي او تــر هغې لاندې ویده کېږي.



او کله کله پر ځان یو داسې تېل لګوي چې بوی یې په ماشې بد لګي او مجبورېږي چې هغوی ته نږدې ور نشي."



مچ په قهر وویل: "ماشې خورې! زړه مه اچوه. راځئ مونږ او تاسې یو ځای داسې فکر وکړو چې څرنګه انسانان دومره ناروغ او کمزوري کړو چې بیا هېڅ شی و نه شي کړای."

ماشې وویل: "هو وروره! زه تل په دې فکر کې یم چې نه یوازې انسانان و چیچم او وینه یې وزبېښم. بلکې تبه هم وروارږوم چې ناروغ او کمزوري هم شي. زما د چیچلو له امله دوی ته په ټول ژوند کې پرله پسې لړزېدونکې تبه پیدا کېږي."

مچ وزرونه وخندل او بیا یې وویل: "پربېږده ماشې خورې! دومره ځان مه غټوه.

# مچ او ماشی

## زمونږ دښمن



# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم : مچ او ماشی

خپروونکی : د سرف مؤسسه (د روغتیایي زده کړو پروژه)

انځورګر : غلام نقشبند حیدري

دووهم چاپ : تله ۱۳۷۸

ایډیټ، کمپوز او د چاپ زیار
عبدالواسع "رحیمي"

له محترم ډاکټرمحمد فرید بزګر څخه چې د دې کتاب په جوړښت کې یې د خپلو نظریاتو په وړاندې کولو له مونږ سره مرسته کړې ده ډېره مننه کوو.

(د روغتیایي زده کړو پروژې اداره)




زمونږ پته:
د سرف مؤسسه، د روغتیایي زده کړو پروژه
د خپرونو څانګه، پوست بکس ۴۷۷ پېښور، پاکستان